



# ( دخيرالبيان تنقيدي مطالعه )
# دنقاد په نظر

(( دخيرالبيان تنقيدي مطالعه )) هغه اثردئ ،چي په ۱۹۸۸ ع کال په پېښور کي خپور سوی دئ. ليکوال يې دپښتوژبې تکړه محقق ښاغلی قلندرمومند دئ(۱) . کتاب پرمقدمه، ضميمې،مراجع، متن ، نوټونه ، تتمه ، اشاريه الف او اشاريه ب باندي مشتمل دئ او په پای کي دوې پاڼې د ناشرعرض ، دوې پاڼې سبحان الله( سمون ليک ) لري. ټول کتاب ۳۵۲ مخه دئ.

په مقدمه کي ښاغلي قلندرمومند دروښان پيربايزيدانصاري(۹۳۱ ـ ۹۸۰ هـ ق ) د ژوند ، روښاني تحريک ، دروښان دآثارو په تېره بيا خيرالبيان په باب ۱۷۹ مخه څېړنه کړې ده اووده په اصطلاح (( اصل خيرالبيان )) يې رامنځ ته کړی دئ. داچي په دې کار کي ښاغلي محقق څومره زياراوکړاوګاللی دئ ، هغه چاته معلومېږي ، چي له دې راز دندې سره يې سروکاروي. دوی بېلابېل اثارپه نقادانه توګه کتلي اوڅېړلي دي ، له خپل نظرسره سم يې پرخپلوڅېړنوباندي نتيجې بنا کړې دي ، چي ځيني برخي يې په رشتياسره جالبي خبري لري.

دهري ژبې اوپه هغو کي دپښتوژبې دادب اوادبي تاريخ اوږدجريان دهمدا راز څېړنواوګروېږنو په نتيجه کي سمبالېږي اوکره کېږي. په يوه پلا اوديوه چا په لاس ددې ټول جريان بشپړه څېړنه نه ممکنه ده اونه معقوله. دايو اوږد اونه شلېدونکی بهېردئ اوپه دې بهيرکي دېرون ناسم حکمونه اونظريات سمېږي ، دنن سم او منل سوي حکمونه دسبا ورځي دنوو موندل سوو مدارکو پرمحک کتل کېږي ، سره زر اوکوټ يې سره بېلېږي. موږچي دپښتوژبې دادب اوادبي تاريخ دتږدې نيمي پېړۍ تحقيقاتي بهېرته ګورو ،نــــــودانصاف په حکم دخپلوقدرمنو مشرانوزياراوکړاو ته په درناوۍ سره سرټيټوو او وينو ، چي نورو خواخوږو څرنګه داهنګامه سرېدوته پرې ايښې نه ده. موږچي ددې خواخوږو يادونه کوو ، دانه(( مداحي )) ده او نه هم(( بې قدري )).

(( دخيرالبيان تنقيدي مطالعه )) دوې اساسي برخي لري. يوه يې د روښان پير او روښاني تحريک په باب څېړنه اوپه هغه کي دځينو په اصطلاح (( غلط فهميو )) سمول دي اوپه دوهمه برخه کي دخيرالبيان د دواړوچاپـــــونو ( پېښور ـ کابل ) له مطالعې څخه يوبل راايستل سوی متن يادمولف په اصطلاح(( دريم قرائت )) دئ. زماددې ليکني هدف ددغو دواړو برخوپه باب دهغوراپورته سوو مسئلو بيانول دي ، چي سپينېدل يې نوره څېړنه هم غواړي.

خيرالبيان دبايزيدروښان ترټولومهم اثردئ ،چي په پښتو ، فارسي ، عربي اوهندي يې کښلی دئ . په دې اثرکي ، چي څلوېښت بيانه لري ، دروښاني مسلک اساسي مطالب اودحنفي مذهب له مخي د اوداسه ، لمانځه ، روژې ، حج ، زکوه ... احکام سته. دبايزيد روښان دادعا پر بنسټ ، خيرالبيان دحق تعالی له خوا دروښان پر زړه باندي دالهام له مخي ليکل سوی دئ . داکتاب د روښان د پيروانو په نظر يومقدس اثر دئ خودروښاني تحريک دمخالفينو په سرکې داخـــــونددروېزه ننګرهاري(۹۴۰ ـ ۱۰۴۸ هـ ق ) اودهغه دلارويانــــــــــوپه خيال د (( ناموزونواوناموافقو کلماتو )) يوه مجموعه ده ، چي د(( کفراو الحاد )) بوی ترې ولاړېږي. تر۱۳۲۲ هـ ش کال پوري په نړۍ کي دخيرالبيان يکي يوه نسخه معلومه وه ، چي څه دپاسه څلوېښت کاله دمخه له انګرېز ختيځ پوه سر ډينسن راس څخه وه اوناروېژي عالم مارګنسترن دلومړي ځل له پاره





دهنددلرغونو اثارو په مجله ج ۱۱ گڼه ۵ ص ۳۲۲ کي يوه مقاله پر وکښله ( ۲ ) . دانسخه تردوهمي نړيوالي جګړې وروسته دجرمني دتيوبنګن پوهنتون کتابتون ته رسېدلې او د ارواښادمولانا عبدالقادر په زيار او تلاښ موندل سوې او دپيښور پښتواکېډيمی له خوا دحافظ محمدعبدالقدوس قاسمي له عالمانه سريزي اوحاشيو سره يوځای خپره سوه ( جون ۱۹۲۷ ع ) . دهمدې نسخې عکسي متن دکابل پوهنتون دادبياتو اوبشري علوموپوهنځي له خوا د پښتو ټولنې په ښپاړښتنه په ۱۳۵۳ ش کال خپورسو . ددې چاپ غټه ښېګڼه داده ، چي يوځوبې ډېرلرغونی متن له ورکېدو وژغوره اوکټ مټ هماغه متن يې چاپ کړ اوبل نوداروانښادعلامه عبدالحي حبيبي اوپوهاندعبدالشکوررشادعالمانه سريزو ددې چاپ اهميت څوچنده زيات کړی دئ.

په ۱۳۲۲ هـ ش کال دپښتوژبې زيارکښ محقق ښاغلي زلمي هيوادمل هندته د يوعلمي سفر په ترڅ کي دخيرالبيان يوه بله بشپړه نسخه وموندله . دانسخه د سالار جنګ موزيم په خطي نسخوکي خوندي ده . دکتابت کال يې ۱۰۷۹ هـ ق دئ ( ۳ ) . ټول متن يې په څلورو ژبو ( پښتو ، فارسي ، عربي ، هندي ) دئ . په دې ډول اوس زموږپه واک کي دخيرالبيان دوې نسخې ستهٔ اودخوښۍ ځای دئ ، چي د خيرالبيان دله منځه وړلوپه باب داخونددروېزه ( رح ) اودهغه د پلويانوله هلوځلوسره بياهم محققين ددې ارزښتناک اثر دوې نسخې په واک کي لري.

دخيرالبيان يوبل متن ښاغلي قلندرمومند برابرکړی دئ ، چي دده په نظر دغه متن دخيرالبيان (( اصل متن )) دئ اودکابل اوپېښور چاپ (( له دواړونسخونه اخذشوئ يودريم قرات دی )) ( ۴ ) . دخيرالبيان د تنقيدي مطالعې دکښلوپه وخت کي قلندرصاحب ته داپته وه ، چي د خيرالبيان يوه بله بشپړه نسخه هـــــم موندل سوې ده اودده په عقيده (( د خيرالبيان ديوې بلې نسخې راپيداکېدل يوه ډېره اهمه خبره ده اوله دې نه به ترډېره حده دځنوهغونکتوپه حل کښې مدد موندی شي چې دې مقاله کښې يې ذکر شوی دی. )) ( ۵ ) . ده که دخپل (( دريم قرات )) له پاره ددغې نسخې ترکتلوپوري لږصبرکړی وای ، زماپه خيال زياربه يې لابشپړسوی وای . قلندرصاحب دخيرالبيان له اوسني موجودمتن څخه آيتونه ، حديثونه اومقولې ايستلې دي اووايي ، چي په اصل خيرالبيان کي آيات اواحاديث نه وو . ددغه (( دريم قرات )) په باب به قضاوت هله بشپړ اوهراړخيزه وي ، چي دخيرالبيان دوهمه مکشوفه نسخه دتحقيق ډګرته راووزي اوهغه وخت به څرګنده سي ، چي د قلندرصاحب (( دريم قرات )) اصل خيرالبيان دئ که نه ؟ خوهغه دلايل چي دی يې دخپل قرات دسموالي داثبات له پاره راوړي ، دډېرقناعت وړنه دي . قلندرصاحب ددې دلايلو په لړ کي داخونددروېزه ( رح ) يوه خبره رانقلوي ، چي ويلې دي (( اين ملعون کتابی راتصنيف کرده بعض کلمات اورابزبان عربی بلاادراک ترکيب و ترتيب جمع آورده وبعضی رابزبان فارسی وبعضی رابزبان افغانی وبعضی رابزبان هندی اما هر کدام ازين کلمات ناموزون وناموافق بحدی که طبائع اهل علم ازآن متنفر ميگردد وآن را خيرالبيان نام برده وچون مملو ازکفر و الحاد و مشحون از افتراء و فساد بوده فقير آنراشرالبيان ناميده و اګر خربيان نامند هم مناسب است . او دعوی نموده که اين بروفق مدعای من ازجانب الله تعالی نزول يافته . )) ( ۲ ) . قلندرصاحب له دې څخه نتيجه اخلي اوليکي : (( که چرې په دې کتاب کښې دقران کريم ايتونه ، احاديث اوداولياؤ اقوال وی نواخون دروېزه به داخامخا ليکل اوپه دغه صورت کښې به داخون دروېزه غندې ( سخت ګير ) عالم هيچرې هم خيرالبيان د ( شرالبيان ) يا ( خربيان ) نوم نه وی ورکړی ځکه چې اخون دروېزه په دې هم سرې کافرکوي چې داووايي چې ( زه مومن يم انشاءالله تعالی ) . نودقران کريم ايات اواحايث نبوی لرونکی کتاب ته يې داسې نسبت څه رنګه کولی شوا وځکه داخبره داخــــــون دروېزه د عقيدې اوعمل نه ډېره غيراغلبه ده چې دومره لويه ګستاخي ترې صادره شي. ددې دليل په رڼاکښې يوځل بيامونږ داوئيلی





شو چې په اصل خیرالبیان کښې دقران کریم ایتونه او احادیث نه وو او هرکله چې د پېښور او کابل نسخې دالرې نوځکه دادهغه خیرالبیان نسخې نه دي چې اخون درویزه لیدلې وه )) ( ۷ ) زماعرض دادئ ، چې که د اخوند درویزه بیان پسې تعقیب سوی وای نو به ښاغلي قلندر ته ثرګنده سوې وای ، چې اخونددرویزه په خیرالبیان کي دایتونو او احادیثو پرسته والي معترف دئ خو اعتراض یې دادئ ، چې ددې ایتونو اواحادیثو ترکیب وترتیب (( ناموزون )) دئ او ځیني یې دده په قول له ځانه وضع سوي دي . راسئ چې داخونددرویزه بابا بیان دده له خپلي خولې ولولو . دی په تذکره الابرار و الاشرار کي د (( این ملعون کتابی را .... )) عبارت په تعقیب ، چې مخکې مو ولووست ، لیکي : (( باآنکه خود تصنیف نه کرده بل بعضی ازان ملاارزانی شاعر ملحد تالیف نموده وبعضی را این ملعون بخود جمع آورده ... ارزانی چون شاعر تیز فهم وفصیح زبان بود درانواع ضلالت وبدعت شعرافغانی وفارسی وهندی وعربی بیان کرده ودراتمام کتاب این لعین موافقت نموده وارزانی نیزکتابی راتصنیف کرده است مملوازانواع ضلالت وآنراچهاررما نامیده .... آنچه این ملعونان در تصانیف خود منقولات ائمهٔ دینی واخبارات احادیث نبوی وآیت قران ربانی ایزاد نموده بعضی ازآن بل اکثرآن افتراء و موضوعات نوشته واکثری راازخود وضع نموده وبعضی ازآن اخبارات و آیات ماولات اند واین ملعونان ازتاویل عاجزآمده اند و بکفر در افتادند وبعضی ازان ازآیات متشابهات اند که تاویل درآن ممنوع آمده ... واین ملعونان ازادراک عبارات آیات محکمات نیزعاجزمانده اند چه جای آن که متشابه رادریابند . )) ( ۸ ).

پاملرنه وکړئ ، چې داخونددرویزه مرادله (( ملعونان )) څخه بایزید روښان او ملا ارزاني اوله تصانیف څخه یې مقصد خیرالبیان او چهار رما ( د ملاارزاني تالیف ؟ ) دئ ځکه چې بیان دهمدې دوو په باره کي دئ . دلته ګورو ، چې اخونددرویزه دبایزیدروښان اوملاارزاني په تصانیفو ( خیرالبیان اوچهاررما ) کي د (( منقولات ائمهٔ دینی و اخبارات احادیث نبوی وآیت قران ربانی )) پرسته والي اعتراف کوي اوله دې اعتراف سره سره یې بیاهم په همدغه صفحه کي خیرالبیان ته (( شرالبیان )) ویلی او دملاارزاني کتاب یې (( مملو ازانواع ضلالت )) ګڼلی دئ . داکارکه دقلندرصاحب په نظر (( لویه ګستاخي )) وي ، هغه په ده اړه لري . مګر داکار سوی دئ . اوس له دې اوږده اقتباسه به واضح سوې وي ، چې دخیرالبیان د (( دریم قرات )) د صحت له پاره د اخوند درویزه په اقوالو باندي استناد کول ثومره وزن لري ؟

له بلي خوا دقلندرصاحب دجوړسوي متن ( خیرالبیان ) په ۲۱۵ مخ کي یوآیت سته ( یوم ینفع ... الخ ) . دغه راز پوهاندعبدالشکوررشاد دخیرالبیان په لغتنامه کي د (( خریان )) لغت دښېړلو په ترڅ کي د خیرالبیان یوعبارت رانقلوي (( ګوره ، مامینه دزیړ د سپین ، خریان ، کرله ، اورتی ، زامن په هسی شکل ( مي ) ددنیامایه کړي دي او ځناوران . )) فاضل استادرشادصاحب زیاتوي ، چې (( دپیرروښان دغه بیان ددې آیت پښتوترجمه ده : زین للناس حب الشهوه من النساء ... الخ )) ( ۹ ) . بل ځای دخیرالبیان په ۴۵ ـ الف مخ کي دغه راغلی عبارت (( هرچه ، دائم ذکروهېر که ، زه به یې وهېر کړم )) د (( نسوالله فنسیهم ... الخ )) پښتوترجمه ګڼي ( ۱۰ ) . زمادایقین دئ ، چې په خیرالبیان کي به دغه رازنورموارد هم وموندل سي ، چي دمتن پښتو عبارت دي دقران کریم دآیتونو کټ مټ ترجمه وي او اخونددرویزه به هم په دې خبره پوهېدی . نودقلندرصاحب په جوړسوي متن کي دیوآیت شریف اودنورومبارکو آیتونو دپښتوترجمو موجودیت به دده داادعا کمزورې نه کړي ، چې وایي (( که چېرې په دې کتاب دقران کریم آیتونه ، احادیث او د اولیاؤ اقوال وی نو اخون درویزه به دا خامخا لیکل اوپه دغه صورت کښې به داخون درویزه غندې ( سخت ګیر ) عالم هیڅرې هم خیرالبیان ته د ( شرالبیان ) یا ( خربیان ) نوم نه وی ورکړی )) . زما په خیال دیوه آیت یادآیتونو دپښتوترجمو سته والی اودډېرو آیتونو موجودیت د حکم له پاره





يوشان اهميت لري . كه چيري دخوآيتونو د سته والي په صورت كي د ( شرالبيان ) نوم وركول (( داخون درويزه د عقيدې اوعمل نه ډېره غيراغلبه )) وي ، نو د يوآيت لرونكي كتاب ته هم بايد د داراز نوم وركول غيراغلب وي . اخونددرويزه په خيرالبيان كي دآيتونو ، احاديثو اوداولياوو اقوال مني ، ان تردي چي ( ماولات ) او ( متشابهات ) او ( محكمات ) يې لاهم بيانوي (١١ ) ، مګر اعتراض يې لكه مخكي چي مي وويل دهغو پر بلاادراكه ترتيب دئ او له ځانه پر وضع سوو احاديثو او منقولاتودئ ، چي له بده مرغه اخوند درويزه هم موږته دا راز احاديث يامنقولات نه دي راښوولي ، چي هغه دي د پيرروښان له خوا جوړ سوي وي .

خوشال خان ختک چي هم دروښان خيرالبيان (( مجـــــــهول )) او (( ناپسندلی )) بللی دئ ، مراديې دانه دئ ، چي ګويا هلته آيتونه او احاديث نسته . بلكي اعتراض يې د هغو پر (( مجهوليت )) دئ نه پــر (( موجوديت )) . نوپه دې ډول داخونددرويزه له خوا خيرالبيان تـــه د (( شرالبيان )) نسبت وركول ددې ادعا له پاره ثبوت كېدلای نه سي ، چي ګنې په اصل خيرالبيان كي آيتونه او احاديث نه وو .

قلندرصاحب دخپل (( اخذ شوې دريم قرات )) دصحت له پاره لومړی دليل دا راوړي ، چي (( دايوالهامي كتاب دی ... دالهامي كتاب دعظمت اود( من جانب الله ) كېدوتقاضا داده ، چي كتاب له خدايه وګڼلی شي ولې دپېښور او كابل چاپي نسخوكښې داحاديثودحضرت علی ( رض ) دارشاداتو دهادي ( بايزيدروښان ) دويناګانو ، دعبدالقادرجيلانی ( رح ) اومحمدالدينوری دحوالو دموجودګۍ په وجه يې داحيثيت مجروحيږي اوځكه ددې خبرې اعتبارنه شي كېدی چي يوخوا خودې يوكتاب دخدای له طرفه ګڼلی شي اوبل خــــوا دې ( خدای ) دخپلي خبرې ددليل له پاره دبنده ګانو دمقولومحتاج وي . )) (١٢ ) .

د ( من جانب الله ) خبره پخپله دپيرروښان اودهغه دپيروانوله خوا هغه رازنه ده سوې لكه اخونددرويزه اودهغه پلويان چي وربانددي الزام لګوي . روښان هيڅكله خيرالبيان ته (صحيفه ) يا (( اسماني كتاب )) نه دئ ويلی اونه يې د (( وحی نازلېدو )) ادعاكړې ده . داالزام دده دمخالفينوله خوا اودهغو تراثرلاندي ددبستان مذاهب دليكونكي له خوا لګول سوی دئ . ددې الزام په رد كي ښاغلي قلندر صاحب هم دخپلي ( تنقيدي مطالعې ) په٣١ ـ ٣٢ ـ ٩٣ مخونوكي پوره دلايل ويلي دي . بايزيد روښان چي كله دميرزاحكيم دربارته وغوښتل سو اودهغه له خوا قاضي خان دمذاكرې له پاره ورته موظف سو ، ددغوالزاماتو د ردپه باب يې تفصيل وركړ . قاضي خان ورځخه وپوښتل : (( شنيده ميشودكه ميګوييي برمن وحی می آيد )) . بايزيد جواب وركړ (( غلط ميګويند من ميفرمايم كه برمن الهام ميشود وندای غيب ميشنوم . )) قاضي خان ورځخه پوښتي (( درميان وسوسه والهام وميان ندای رحمانی و شيطانی چګونه فرق وتميز می نمايی )) بايزيد ورته وايي (( كه تميز ميان الهام و وسوسۀ وميان ندای رحمانی وشيطانی ازدليل آيت وحديث اقوال مشايخ ميكنم هرنداء والهام كه موافق آيت وحديث واقوال مشايخ باشد آنرا ندای رحمانی والهام ميشناسم وآنكه موافق آيت وحديث نبوی نبود آنراوسوسه وندای شيطانی ميدانم ، به اعوذبالله من الشيطان الرجيم ردميكنم . )) قاضي خان پوښتنه ورځخه كوي (( مردمان ميګويند كه ميفرمايی كه برمن ازروی وحی كتاب نازل شده وآن چهل سپاره است )) . بايزيدپه جواب كي وايي (( آنچه مدعيان ميګويند خلاف است زيراكه من ګفتم حق تعالی ازروی الهام بردل من كتاب نزول فرموده است ونام آن خيرالبيان است . چهل بيان درآن مذكوراست چنانچه





غوثیه برغوث الاعظم ازروی الهام نزول شده . اماعوام الناس فرق میان وحی والهام نمی توانندکرد ، لاجرم نام وحی میگیرند وحاسدان ازروی حسد سخن بازمیگردانند وبجای الهام وحی میگویند . )) ( ۱۳ )

تاسي درنولوستونکوولوستل ، چي دلته خدای دخپلي ویناد تایید له پاره د بندګانو داقوالو دراوړلو خبره ( نعوذبالله من ذلک ) نه بایزید کړي اونه یې پیروانو . دوحی دنزول الزام دده دمخالفینوله خواسوی دئ اودمخالفینوالزام باید قلندر صاحب دخپلي ادعادثبوت له پاره دستاویز کـــــړی نه وای . داسلامي ادبیاتوپه تاریخ کي خیرالبیان یوازنی کتاب نه دئ ، چي مولف یې پرزړه باندي دالهام دعوه کوي ، بلکي داروانښادعلامه حبیبي په قول (( موږته تر روښان پیردمخه دوې الرساله الغوثیه پېژنو : یوه دشیخ محی الدین ابن عربی ( ۶۳۸ هـ ق مړ ) ...بله دشیخ عبدالقادرګیلانی غوث الاعظم ( ۴۹۱ ــ ۵۶۱ ق ) په نامه ده . دادواړه رسالې دغسي دي چي دخدای تعالی له خوا څخه دوی ته دغوث په نامه خطاب کېږي اودوی دغه خپل الهامات په دغو رسالو کي کاږي . )) ( ۱۴ ) دادواړه رسالې هیڅکله داسماني صحیفو په نامه دي بلل سوي اودغه رازخیرالبیان هم نه صحیفه ده نه اسماني کتاب . ځکه نودقلندرصاحب لومړی دلیل ، چي دروښان دمخالفینودالزام پربنسټ دخیرالبیان لومړی مونډل سوي نسخه ناسمه بولي اوخپل اخذ کړه سوی قرات سم ، یوه داسي دعوه ده ، چي نوره څېړنه غواړي . په تېره بیا اوس چي ددې کتاب یوه بله نسخه هم مونډل سوې ده .

قلندرصاحب دخپل دریم قرات دسموالي له پاره یوبل دلیل راوړي اوهغه داچي که دخیرالبیان له متن څخه آیتونه ، احادیث اوداولیاوو اقوال وایستل سي ، پښتو متن یر ډېر روانېږي ( نهم دلیل ) اودفارسي اوعربي عبارت په وجه چي یې تسلسل وران سوې دئ ، دهغو د ایستلوپه صورت کي متن (( معنی داراوبې تکلفه )) کېږي . زماپه نظرکه داعدم تسلسل نه وای اخونددرویزه به هیڅکله هم دخیرالبیان کلمات (( بلاادراک ترکیب وترتیب )) نه وای بللي . ځکه داخوند درویزه اعتراضونه خوهم تشي هوايي خبري نه دي . دغه (( عدم تسلسل )) پردې خبره باندي یوټینګ دلیل کېدای سي ، چي په خیرالبیان کي آیات ، احادیث ، مقولې اوفارسي وعربي عبارتونه سته . که دانه وای ، نو یو روان (( معنی دار او بې تکلفه )) متن ته به هیچا (( ناموزون )) ، (( مجهول )) او (( ناپسندلی )) نه وای ویلی .

زه خپلي خبري په دې برخه کي رالنډوم او وایـــم ، چي دخیرالبیان د (( دریم قرات )) په برابرولوکي دقلندرصاحب زیاراوتحقیق دقدروړ دئ مګردنوري څېړني محتاج هم دئ .

ښاغلي قلندر دروښان پیردژوند ، مرګ اوپه مجموع کي دروښاني غورځنګ د ببلابېلو اړخونو په باب اوږده څېړنه کړې ده ، چي دزیاتي ستاینې وړده خوځیني تت اړخونه اوکمزوري فیصلې پکښې دي .

**لومړی دروښان دزېږېدو نېټه:**

قلندرصاحب په تنقیدي مطالعه ( ۱۰ ـ مخونو ) کي دبایزیدروښان دزېږېدو دکال په برخه کي خپل خیالات څرګندکړي او د ښاغلي مولاناعبدالقدوس قاسمي اودهغوی په تتبع یې دښاغلي سید تقویم الحق کاکاخېل تحقیق ، چي دبایزید د زېږېدوکال یې ۹۳۱ هـ ق بللی دئ ، غیرمستندمعلومات ګڼلي دي . ددوی دا (( غلط فهمي )) یې د دبستان مذاهب له بیانه





ماخوذ تصورکړي ده . ددبستان مذاهب حواله يې ددغه کتاب انګرېزي ترجمې ص ۳۴۵ نيويارک ۱۹۳۷ ته ورکړې ده . زماسره داترجمه نسته خوددبستان مذاهب هغه نسخه ، چي د۱۲۹۲ هـ ق کال دروژې دمبارکي مياشتي پرشپاړسمه په (( دارالحکومهٔ بمبئی )) کي چاپ سوې ده ، راته پرته ده . ددې کتاب په ۲۴۷ مخ کي لولو :

(( حضرت ميان بايزيدانصاری ... دراواخرايام حکومت افغان درشهر جلندهرپنجاب متولدګشت وبعدازسالی از اينواقعه حضرت فردوس مکانی بابرپادشاه برابراهيم افغان فيروزی يافت . )) ددبستان مذاهب پردغه بيان باندي دقلندرصاحب اعتراض صرف دادئ ، چي ۹۳۲ هـ ق کال له ۱۵۲۵ ع سره برابرنه دئ بلکي (( دپاني پت جنګ چي ابراهيم لودي شهيدپکښې شکست خـوړلی وه په ماه رجب ۹۳۲ مطابق اپريل ۱۵۲۶ ع شوی وه )) ( ۱۵ ) . حافظ محمدعبدالقدوس قاسمي ، چي دخيرالبيان په سريزه کي دبايزيد دتولدکال ۹۳۱ هـ ښودلی دئ ، هلته يې عيسوي سنه ورسره راوړې نه ده . ښايي ددبستان مذاهب انګرېزي مترجم به عيسوي سنې هم راوړي وي . زمامقصد دادئ ، چي قلندرصاحب ددبستان مذاهب د۹۳۲ هـ ق په باب چي بابرپر ابراهيم افغان بريالی سو ، اعتراض نه لري ، بلکي له عيسوي سنې سره دهغه مطابقت ناسم ګڼي . دده داخبره پرځای ده . بابردهندسلطنت له سلطان ابراهيم لودي څخه د۹۳۲ هـ ق کال درجب پراتمه دجمعې په ورځ ونيو ، چي دانېټه د۱۵۲۶ ع کال داپريل له يوويشتمي سره برابره ده ( ۱۲ ) . مګرددې مطابقت خبره خونه ددبستان مذاهب مولف کړې ده اونه حافظ عبدالقدوس صاحب . حافظ صاحب خو خپل علمي احتياط په داسي الفاظوکي ښودلی دئ : (( ... دلته دده نه دبی بی امينې ځوی په سن نهه سوه يودېرش ( ۹۳۱ هـ ) خواوشاکښې پيداشو چه نوم يې ورله بايزيد کېښود . )) ( ۱۷ ) . د ( خواوشا ) په قيدکي دمياشتواختلاف ځايېدلای سي اوداچي قلندرصاحب دښاغـــــــلوقاسمي صاحب او کاکاخېل صاحب استنتاج (( غلط فهمی )) ګڼي ، زه يې په علت پوه نه سوم . دسنواتوپه مطابقت کي کله کله تېروېر پېښېږي . د(( خيرالبيان تنقيدي مطالعې )) په ۱۱ مخ کي ښاغلي قلندرصاحب ۱۹۷۲ ع کال له ۱۳۴۲ ش سره مطابق ليکلی خوپه ۸۰ مخ کي يې همداشمسي کال له ۱۹۶۳ ع سره برابر بللی دئ اوپه سبحان الله ( سمون ليک ) کي يې اشاره نه ده ورته کړې .

اروانښاد علامه عبدالحي حبيبي ، چي د (( روښان پيرعصر اودده غورځنګ )) نومې مقاله کي د بايزيد د زېږېدوکال ۹۳۱ هـ ( ۱۵۲۴ ع ) کښلی دئ ، هـم قلندرصاحب په جراتمندانه حکم سره (( غلط )) بللی دئ . دی وايي (( داعيسوي کال هم په دې لحاظ غلط دئ چي د۹۳۱ په هجري کال کښې دعيسوي ۱۵۲۴ کال صرف دري مياشتې شاملي دي نورې نهه مياشتې په ۱۵۲۵ ورګډېږي . )) ( ۱۸ ) . دلته بياهم په هجري قمري سنه کي اختلاف نسته اوزمايه نظرکه د۹۳۱ هـ ق کال مطابق عيسوي کال کاږو ، بايد ۲۴ـ۱۹۲۵ ع وليکو . په يوازي سر ۱۵۲۴ يا ۱۵۲۵ بايددواړه ناسم وبولو .

داروانښادقيام الدين خادم له خواچي دروښان دتولدکال ۹۳۱ هـ ق ښودل سوی دئ دښاغلي قلندرله اعتراضه ځکه په امان کي پاته سوی نه دئ ، چي مطابق عيسوي کال يې ناسم دئ ، تردې احکامو وروسته ، قلندرصاحب خپل تحقيق دحالنامې له مخې ، چي دروښاني تحريک په باب په رشتياسره يومستندکتاب دئ ، پيل کوي اوليکي : (( حالنامه ... دبايزيدروښان دپيدايش کال خوصراحتا نه ښيي ولې ورته داسې اشاره کوي چې دبايزيد دپيدايش نه ( بعدازچندسال لشکرمغل سوی هندوستان آمد ، شهربهيره راتاخت نمود )) ( ۱۹ ) ورپسې زياتوي چي بابربهېره په ۹۲۵ هـ مطابق ۱۵۱۹ ع کي نيولې وه اوداسي نتيجه ترې اخلي چي که (( چندسال )) درې کاله وګڼو (( نودبايزيد دپيداکېدو کال ۹۲۲ هـ ق کيږي چي دعيسوی کال ۱۵۱۶ سره سمون خوري . )) ( ۲۰ ) خودلته بياله مشکل سره مخامخ کېږي ځکه حالنامه يوبل روايت هم لري اوهغه داچي ((





بعدازیک سال کم وبیش مخلوق هندوستان راازافغانان گرفتند .... ودرآنوقت بایزیدقدس سره پنج ساله بود . )) دی وایي مغلوهندوستان په ۹۳۲ هـ ق له پښتنوڅخه ونیو اوپه دې حساب نودبایزید تولدباید په ۲۸ ـ ۹۲۷ هـ کي واقع سوی وي. دپورتنیوروایتوله لاندي باندي کولو وروسته ، قلندرصاحب داسي فیصله کوي: (( ترهغه وخته چې بل کوم باوري سند نه وي پیدا شوی مونږ په یقین سره دانه شوویلی چې دپیرروښان دپیدایش کوم تاریخ صحیح دی ؟ـ ۹۲۱ هـ ، ۹۳۲ هـ ، ۹۲۵ هـ ، اوکه ۹۲۷ هـ . )) ( ۲۱ ) .

زه حیران یم ، چې دداسي بې یقینۍ په صورت کي څرنګه دنورو تقریبا مستند تحقیق ته (( غلط فهمي )) ویل کېږي اودزیاتي حیرانتیا خبره لابله ده . قلندرصاحب دخپل اثر ( دخیرالبیان تنقیدي مطالعه ) په ۱۲ مخ کي داروانښاد علامه حبیبي په تقلید دروښان دژوندلنډه نقشه وړاندي کوي اولیکي : اوس چې نومونږ دبایزیدانصاري دژوند د واقعاتونقشه جوړوو نوشکل به یې داسي وي:

## پیدایش ـ ۹۲۵ هـ ( غالبا )

ورپسې یې د(( الهام دعوی ، تجارت اوواپسي ، مجاهده ، ... وفات )) کلونه ټاکلي دي. زمادحیرانتیا وجه داده چې په ۱۱ مخ یې دبایزید دپیدایش دکال په باب په بې یقینۍ سره څلور واریانتېه ( ۹۲۱ ـ ۹۳۲ ـ ۹۲۵ ـ ۹۲۷ هـ ) وړاندي کړي دي ، چې په دې کي غیراغلب کال چې هیڅ راز منطق نه ورته جوړېږي ، ۹۲۵ هـ کال دئ څکه په همدې کال بابربهېره نیولې ده اودحالنامې دروایت له مخې داواقعه دبایزیدله زېږېدو (( بعدازچند سال )) پیښه سوې ده. لغت پوهان د ( چند ) په کلمه کي له دروڅخه تر نهوپوري عددونه شامل ګڼي ( غیاث اللغات ) .
په دې اوو عددونوکي که هرعدد له ۹۲۵ هـ څخه وایستل سي ، د بایزید دزېږېدوکال نورهم شاته ځي . نه پوهېږم ، چې قلندرصاحب ته په کوم منطق ۹۲۵ هـ کال دبایزیددتولدکال ایسېدلی دئ ، هغه هــــم د( غالبا ) په قید . اصول داسي دي ، چې محققین د( غالبا ) قیدهغه وخت کاروي ، چې داحتمال له پاره یې ترنورو واریانتېو ډېرپاخه بنسټونه موجود وي . خو قلندرصاحب ترټولو غیرمحتمل کال تــــه د ( غالبا ) قیدایښی دئ.

زه دخپلوفاضلومشرانوڅېړونکوپه پیروی دبایزیددزېږېدودتایخ په برخه کي د دبستان مذاهب روایت ترهغو پوري د ډاډ وړبولم ، چې بل باوري سند نه وي موندل سوی . په دې معنا چې روښان پیرپه ۹۳۱ هـ ق کال زېږېدلی دئ . ددې کال د ناسموالي په باب قلندرصاحب هیڅ راز منطق نه دي وړاندي کړي ، صرف دعیسوي سنې دمطابقت په برخه کي یې قلمفرسایي کړې ده.

## دوهم ـ دبایزیدروښان دوفات کال:

دروښان دوفات دتاریخ په باب دحالنامې ترپیداکېدو دمخه د څېړونکوترمنځ اختلافونه وو. کله چې حالنامه دتحقیق ډګرته راووتله نوداااختلافونه تقریبا حل سول داځکه ، چې حالنامه دټولو څېړونکوپه نظر وروښاني تحریک په باب ډېر غوره اومستنداثر دئ . ښاغلی قلندرمومند یې دروښانیانو(( رسمي تاریخ )) بولي . حالنامه د بایزید روښان دوفات نېټه دقلندرصاحب خبره (( بالکل په صفااوغیرمبهم اندازکښې وایي )) اوزماپه نظرد(( خو )) ځای پکښې نه پرېږدي. ښاغلی قلندردحالنامې د ۲۹۱ مخ په حواله لیکي : (( بعد از آغازنمودن یعنی شمشیرګرفتن پیر دستګیر قدس سره بدونیم سال بتاریخ هجری نه صدوهشتاد ازهجرت رسالت پناه بوصال پیوست . )) ( ۲۲ ) بل ځای بیا عین عبارت تکراروي اودحالنامې





دهمدې صفحې ( ۲۹۱ ) په حواله وايي (( آخرپیردستگیر قدس سره ازآن سرزمین روان شد تشریف به ملک یوسفزئی برد چندگاه درآن ملک یوسفزئی بسربرد بتاریخ نه صد هشتادازهجرت رسالت پناه بوصال دوست پیوست ... بعدازتجهیز وتکفین قالب مبارکش رادرصندوق نهاده درآن نواحی دفن کردند . )) قلندرصاحب ، چې پخپل دغه کتاب کې دحالنامې ذکرکوي ، مراديې دپښتواکېډمۍ ټاپ سوې نسخه ده .مورږ ته د حالنامې يوه خطي نسخه معلومه ده ، چې دهندوستان د اتراپردېش ايالت دعليګړمسلم يونيورسيټۍ دمولاناابوالکلام آزاد لايبرېرۍ په سبحان الله کولکشن نومره ( ف ۹۲۰ \ ۳۷ ) کې خوندي ده ( ۲۳ ) . ددې نسخې مايکروفيلم په ۱۳۵۳ ش کال دبايزيدروښان دڅلورسوم تلين د نړيوال سيمينار دجوړېدوله امله له هندوستانه دکابل پښتوټولنې ته راغوښتل سوی و . له همدې مايکروفيلم څخه دافغانستان دعلومو اکاډېمۍ دژبواوادبياتودمرکزله خوا ټاپيې متن په ۱۳۷۴ ش کال تهيه سو . ماته اوس دهمدې ټاپ سوي متن يوناقص ټوک پروت دئ ، چې ددې کرښودکښلوپه وخت کې مې کارځني اخيستی دئ . دقلندر صاحب موردنظر ټاپ سوې حالنامه هم دعليګړ يونيورسيټۍ له نسخې څخه برابره سوې ده . حافظ محمد عبدالقدوس قاسمي صاحب د خيرالبيان په دېباچه پنځوسم مخ کې همداخبره تاييدوي . دحالنامې په باب له دا اوږده بيانه مې مراد دادئ ، چې دکابل د پښتو ټولني د ټاپ سوي نسخې اودقلندرصاحب درانقل سويو عبارتونوترمنځ توپيرسته . دکابل په ټاپ ســـــوې نسخه ۳۸۷ مخ کې داسي لولو : (( آخرپیردستگیرازآن سرزمین روان شدتشریف به ملک یوسفزی برد چندگاه درآن ملک به سربردبعدازآغازنمودن یعنی شمشیرگرفتن پیردستگیر قدس سره به دونیم سال به تاریخ هجری نه صد وهشتاد سنه ( ۹۸۰ ) ازهجرت رسالت پناه به وصال دوست پیوست . ))

دکابل په ټاپ سوې حالنامه کې دبايزيد دوفات کال په تورو او هندسه دواړو ليکل سوی دئ . (( بعدازآغازنمودن یعنی شمشیرگرفتن پیردستگیرقدس سره به دونیم سال )) عبارت هم دقلندرصاحب په نقل قول کې ايستل سوی دئ اوخالي ځای يې په ( ... ) نه دئ ښوولی ، چې دابه زماپه خيال دخطاط سهوه وي . مطلب داچې دحالنامې روايت ډېرصريح دئ .

ښاغلي زلمي هيوادمل دخيرالبيان ددوهمي نسخې ترکشف وروسته داسي احتمال يادونه کړې ده ، چې روښان پيردې په ۹۸۳ هـ ق کې وفات سوی وي . دنوموړي داستدلال تاداو پرهغه ليکنه ولاړ دئ چې دخيرالبيان ددوهمي مکشوفي نسخې په پای کې سته . هلته کاتب کښلي دي : (( تمت تمام شد بتاريخ دويم ربيع الثانی سنه ۱۰۷۹ هجری موافق سنه نودشش ازآغازمياروښان بايزيد رحمت الله عليه ... )) . لـه (( سنه نودشش ازآغازمياروښان )) څخه ښاغلي هيوادمل داسي نتيجه اخلي ، چې دکاتب مطلب به (( ښايي دبايزيد دمړيني شپږنوييم کال وي )) ( ۲۴ ) . ښاغلی قلندرله دې استنتاج سره موافق نه دئ او وايي (( له آغازنه مطلب وفات نه دئ ... اومطلب يې ( شمشيرګرفتن ) دئ . )) اود ( آغازپور ـــ آغازپوريان ) اصطلاحات ددليل په توګه راوړي . رشتيا هم په دې برخه کې دښاغلي قلندرخبره پرځای ده . په روښاني ادبياتو کې ( آغاز ) په هغه معنا کارول سوی دئ ، چې قلندر صاحب اشاره ورته کوي نه دوفات په معنا .

قلندرصاحب دروښان دمرګ دتاريخ په باب دحالنامې دصريح حکم ( ۹۸۰ هـ ق ) په برخه کې تريولړ استدلال وروسته ليکي، چې ښايي له کاتب څخه د (وپنج )) يا (( وشش )) توري له قلمه لوېدلي وي اوګويا روښان په ۹۸۵ يا ۹۸۶ هـ وفات سوی دئ . داچې له کاتبه دې د ((وپنج)) يا (( وشش )) توري پاته سوي وي ، له احتماله ليري نه ده . په خطي نسخوکې په سلګونوځايونه سته ، چې له کاتبه دې توري پاته سوي وي مګردروښان دمړيني دکال په برخه کې دداسي سهوي له





پېښېدو سره زه موافق نه يم. که دعليګړيونيورسيټۍ دحالنامې له مايکروفيلم څخه استخراج په صحيح توګه سوی وي اوپه ټايپ سوې نسخه کي دمايکروفيلم عين متن رانقل سوی وي ، نوهلته خو په تورو اوعدد دواړو( ۹۸۰ هـ ق ) دبايزيددمرګ کال دئ اوپه داسي حالت کي دکاتب دغلطۍ احتمال کمزوری وي . حالنامه خودآغازپورجګړې نېټه موږته نه راښيي اوقلندرصاحب دخيرالبيان ددوهمي مکشوفي نسخې دپای له عبارت څخه داقياس کړی دئ ، چي ګويا داجګړه په ۹۸۳ هـ ق سوې ده. که د حالنامې په موردکي دکاتب دغلطۍ احتمال وارد وي نو دحيدرآباد ( هند ) د خيرالبيان دنسخې دکاتب په برخه کي هم دغلطۍ احتمال ستنه. په دي صورت کي به موږ په کوم دليل دهغه له خوا ليکل سوې سنه ياعدد دکاني کرښه وبولو ، هغه هم په داسي حال کي ، چي سنه يوازي په هندسه ليکل سوې ده اوپه حالنامه کي په تورواوهندسه دواړو. دلته بايد عرض کړم،چي سمدلاسه په (۹۸۰ هـ) کي د نور حدس وګومان ځای نستنه. دآغازپورجګړې دتاريخ په باب به نورو څېړنوته انتظار باسو. ترهغو پوري دحالنامې قول مستند دئ اوروښان بايزيد په ۹۸۰ هـ ق کي مړ دئ ( ۲۵ ).

دبايزيددوفات متعلق ، چي داخونددرويزه دبيان له مخي ځيني غلط فهمۍ خپرې سوي دي ، ښاغلي قلندرمومند دهغو رددحالنامې په استنادکړی دئ اولوستونکی دي دده دکتاب ( دخيرالبيان تنقيدي مطالعه ) په ۱۷ ــ ۲۱ مخونو کي وګوري. قلندرصاحب داخونددرويزه ټولي هغه خبري ردوي ، چي دبايزيد دوفات په باب يې کړي دي. ده دبايزيد دتعليماتو په برخه کي هم دهغو (( غلط فهميو )) بيان کړی دئ، چي ګويا بايزيد د نورو صوفياوو پــــــــــرخلاف د سلوک اته مقامه ( شريعت ، طريقت ، حقيقت ، معرفت ، قربت ، وصلت ، وحدت او سکونت ) ټاکلي دي. دی دروښان پير اودهغه دپيروانوله خولې څرګندوي ، چي وروستي (( ځلــــــــورمقامه )) دمعرفت مدارج دي او (( بايزيد روښان دخپل علم توحيد هم هغه څلورمنازل ګڼل دکوموچي نورصوفياء قائل دي )) . دغه راز ښاغلی قلندر داخونددرويزه هغه الزامونه په ټينګه ردوي ، چي په مخزن اوتذکره الابراروالاشرار کي يې د بايزيد روښان دتعليماتو اوعقايدوپه باب لګولي دي اوپه دې باب له ښاغلي قاسمي اونورومحققينو سره همنظردئ ان تردې چي د ښاغلي قاسمي دهغه اعتراض ترديدهم په معقولودلايلوکوي ، چي د روښان په باب يې کړی دئ. قاسمي صاحب ليکي (( دشفاعت انکاردی صرف تردې حده کوي چي کوم خلق بې عمله وي اوناقصانو په دې طمع کړي دي چي ستاسو شفاعت به کېږي.... )) ( ۲۲ ) اوپه حاشيه کي زياتوي (( اودادومره خبره هم داهل السنت دعقيدې نه خلاف ده . )) قلندر صاحب دروښان دخپلو ليکنواوقرآني احکاموپه روڼاکي د شفاعت په باب د بايزيد دبيان ملاتړکوي اودقاسمي صاحب داستنتاج له امله (( افسوس )) څرګندوي ( ۲۷ ).

بله خبره چي دښاغلي قلندرصاحب داعتراض وړده ، هغه دروښان پير په آثارو کي د ( رسم الخط ) رسالې موجوديت دئ. دښاغلي معترض داستدلال تاداو پردې خبره ولاړ دئ ، چي که بايزيد درسم الخط په باب څه ليکلي وي نو په حالنامه کې ولي ذکرنستنه. د بايزيد روښان درسم الخط رسالې په باب ښاغلي حافظ محمد عبدالقدوس قاسمي دخپل عالمانه تحقيق په ترڅ کي د(( بايزيدتصنيفات )) ترسرليک لاندي اتمه نومره تصنيف (( رسم الخط پښتو )) راوړي اوليکي ، چي د دولت لواني ديوبيت له مخي (( ښاغلی عبدالشکور دانتيجه اخلي چي ده ( بايزيد ــ م. هـ ) دپښتورسم الخط رساله ليکلې ده خوبل ځای ددې رسالې ذکرنشته اوتش ددې شعرنه داقياس کول ګران دی )) ( ۲۸ ) . ددولت لواني نوموړی بيت داسي دئ:

افغاني لفظ مشکل ولوست کوښن نشه
ورته وشــــــــوه کننده ديارلس حرفونه





اروانښادعلامه حبيبي هم ددولت دپورتني بيت په استناد او د خيرالبيان دلومړۍ موندل سوي نسخې دسرله خوا دڅوارلسو ؟ مخو له مخې ، چې دالفباء دليکدودپه باب دي ، ليکي : (( دارزاني او دولت قلمي دېوانونه چې ماليدلي دي اودقندهاردمرحوم دوست محمدبړېڅ ديوې ښېنومې نسخې ( چې دروښان په طريقه اړه لري ) ليکدودونه د خيرالبيان ددغې سريزې سره برابردي ، اوښايي چې دغه رساله پير روښان دپښتوليکدودله پاره کښلې اوبيايې دخيرالبيان په سرکي ور اچولې وي چې لوستونکي يې په ليکدودخبرسي . )) ( ۲۹ ) . دلته ګورو ، چې اروانښادعلامه هم دغه څومخه داحتمال په اساس د پير روښان دپښتوليکدود رساله ګڼلې ده اوغوڅ حکم يې نه دئ کــړی . د ( ښايي ) کلمه په همدې منظور کارول سوې ده . فاضل استاد پوهاندعبدالشکور رشاد هم دخيرالبيان دسرله خوا څومخه د (( الفبې رساله ګوټې )) بللې ده اوديوه مستقل اثر په نامه يې ياده کړې نه ده . قلندرصاحب دخيرالبيان په شروع کي دالفبې دليکدود او لارښوونې په باب دا څو مخه دخيرالبيان له متن څخه يوه جلاحصه بولي . دی وايي کتاب ((  په اصل کښې دوه حصې لري يوه حصه يې په څلورو صفحودچاپ او ۵ ب دعکسي نسخې مشتمله ده اوپکښې صرف د رسم الخط بحث شوې دئ اوبله حصه يې له دغه پس ده چې په اصل کښې له دغــــه ځايه دخيرالبيان سره متعلقه حصه شروع کيږي... )) ( ۳۰ ) . دخيرالبيان دشروع دغه برخي ته که درسالې ، رساله ګوټي ياتصنيف نوم ورکو او که بل څه ، خوپردې خبره اتفاق سته ، چې داڅومخه دخيرالبيان له متن څخه بېل بيان دئ اوکه ديوې مستقلي ليکني نوم ورکړه سې ، هم به ډېرنارواکارنه وي . درنولوستونکوته معلومه ده ، چې دځينوآثارو له پاره دليکوالوسريزي که هم محدودي پاڼې وي ، دتحقيق د دروندوالي يادېوې ابتکاري مسئلې درامنځ ته کولوله امله ديوه مستقل اثرنوم ګټلای سي . دخيرالبيان عکسي چاپ ته دفاضل استادپوهاندرشادصاحب سريزه اودغه راز ګلشن روه ته د هغوی له خواليکل سوې مقدمه دخپل نوعيت اوابتکاري تحقيق له مخي دمستقلوآثاروحيثيت لري . که يو وخت موږ دنومورې استاد د آثارولست برابروو ، دغه سريزي بايدديوه عليحده اثرپه توګه ثبت کړو . ( ۳۱ )

قلندرصاحب روښاني تحريک ملي اوسياسي تحريک نه ، بلکي يوازې يو مذهبي تحريک بولي . په دې برخه کي دپوهانوترمنځ اختلاف سته . ځيني په دې نظر دي ، چې دبايزيد تحريک په لومړي سر کي صرف مذهبي و ، وروسته يې دده د زامنوداقتدارپه وخت کي سياسي رنګ واخيست . خوځيني نوربيا داتحريک له لويه سره سياسي ګڼي . ښاغلی قلندر پخپل کتاب کي زيارايستلی دئ ثابته کړي ، چې داتحريک ملي اوسياسي نه و او دمغولو مخالفت يې هم نه کاوه . دی ليکي : (( دبايزيدتحريک بالکل يومذهبي تحريک وه ـ مغلو سره دتوئې دقبيلې ورومبی ډغره هم دمذهب په نامه شوې وه . )) ( ۳۲ ) .ديونظرپه توګه خوداخبره داحترام وړده مګردی دروښاني تحريک دسياسي توب پلويان په مرموزو الفاظو کي د (( جدلي ماديت )) مبلغين ګڼي ( تنقيدي مطالعه ۲۱ مخ ) اوبايد ووايم ، چې په دې برخه کي دروسي مستشرق اسلانوف دخبط اوخطا پړه پرنوروموږ منو پوهانواچوي ، چې دانوزماپه نظر يوه لويه بې انصافي او ناروالزام دئ . اسلانوف خوپه ګران افغانستان کي دسقاو دزوی تــوره تياره دوره (( دهقاني جنبش )) بللی دئ . دی چې په هرنظروي هغه شخصا په ده اړه لري مګردروښاني تحريک دسياسي توب له پاره خو موجه دلايل سته . دروښان پيرغورځنګ يوازې دده په ژوند کي نه راخلاصه کيږي . دايو اوږد تحريک و ، چې له پلاره زامنو او لمسيوته رسېدلی دئ اود روښان پيرترمړيني وروسته خوښاغلی قلندرهم ددې تحريک پر سياسي توب معترف دئ . دی ليکي : (( له دې هيڅوک انکارنه شي کولی چې دعبدالقادرتر دوره چې راتللو نودروښانيانو تحريک بالکل سياسي شوی وه . )) ( ۳۳ ) . دروښان لوی مخاف اخونددروېزه د بايزيددعزايموپه باب ليکي : (( لښکری به کړم بنيادی هندوستان به ونيسمه ـ اوازې يې کړلې ګډي ـ هرچی آس لري راځئ ـ آس به ماپوری باسئ . واکبرپادشاه ټنګې واړه زمادي ، دوه ګونه به درکوم دغه ښادی . ))( ۳۴ ) د ( هندوستان نيول ) د ( اکبرپادشاه دټنګو )





دتصاحب ادعا ـ بیت المال جوړول اوپه اخلافوکي یې د ( سکې وهل ) تول آیا سیاسي مقاصد نه دي ؟ دهندپه نیمه وچه کي دداسي غورځنګونو نورمثالونه هم سته ، چي په شروع کي یې اصلاحي اومذهبي رنګ درلود خوله سیاسي مجاهدو څخه یې سترګي نه سي پټېدلای . قلندرصاحب لیکي : (( دبایزید دجانشینانواودهنددمغلي پاچایانوترمنځه دتعلقاتو نوعیت هم داثرګندوي چې دبایزیدانصاري تحریک سیاسي اوقومي تحریک نه وه که داسې وی نودجلال الدین ځوی الله داد ( پیدایش ۱۰۰۰ هـ ) به دمغلو منصب اودرشیدخان خطاب هغه وخت نه قبلولی چې دتره ( شیخ عمر ) ځوی یې مغلو سره په جنګ اخته وه .... )) ( ۳۵ ) . دسیاسي اوملي تحریکونو پـــه پیروانوکي دښمن ته دځینوکسانو سرټیټول دتحریک پرنوعیت باندي اغېزه نه کوي. بهرام دخپل پلار خوشال خان ختک په ژوند کي دمغولوپرخوا ودرېد . مګر دده دې نا اهلۍ دخوشال خاني غورځنګ مغولي ضد لوری په هیڅ صورت پیکه ( تت ) کړی نه دئ. قلندرمومند دحالنامې یوروایت دحافظ قاسمي صاحب له خولې رانقلوي : (( د بایزید ټبر بي بي شمسو دیوسف زیو په قید کښې وه ـ وځامنو سرونه یې ورته پریکړي ورمخکښې کړل ـ د سترګی نه یې اوښکه توئی نه کړه ـ وئیل یې چې زما ځامن په غلا په کاسیرۍ کښې نه دي مړه شړي چې زه پرې خفه شم ـ آفرین شه درباندي ځامنو چې دخدائی په لارکښې محکم پاتې شوئ . )) ( ۳۶ ) . او ورپسې زیاتوي (( نوچې دبی بی شمسو په خیال دهغې ځامن دخدائی په لار کښې مړه شوي دي نوداتحریک سیاسي نه ، دینی وه ـ ګڼې بی بی شمسو داهم وئیلی شو چې دوطن دپاره ـ دقوم دپاره یادحق دپاره مړه شوی . )) په زړه پوري خبره داده قلندر صاحب پـــــرهغوکسانود ( جدلي مادیت ) دمبلغینوټاپه لګوي ، چي دروښاني تحریک سیاسي توب مني . مګرپه خپل پورتني بیان کي ســــــــم دم دجدلي مادیت ( ډیالکټیکي ماټریالیزم ) داصطلاحاتوتراغېزې لاندي راغلی دئ. د مسلمانانو په نظر دوطن په لارکي سرښندل دخدای په لار اودحق په لارکي ایثاراوقرباني ده. دوطن لار، دحق لار، دخدای لار یوه لارده. د وطن مینه دایمان جزء دئ. داجدلي مادیت دپیروانواصطلاحات دي ، چي دوطن لار اودقوم لار ملي مفاهیم ګڼي اودخدای لار مذهبي. مومنان دوطن دلاري مجاهدین دخدای دلاري اودحق دلاري سرتېري ګڼي.

دروښاني تحریک دسیاسي توب د پلویانو اومخالفینونظریات مور. ته داحترام وړدي. په دې باب چي هرڅومره ډېره څېړنه وسي د پښتنو دتاریخ دروښانولوله پاره ګټورکاردئ. دښاغلي سیدظفر کاکا خېل دا خبره ښېخي پرځای ده ، چي وایي (( بیا هم دایوحقیقت دئ چي په پښتنوقبایلو کي دمغلوداقتدارپرخلاف دخپلي ازادۍ دحفاظت جذبه همدې تحریک رالړزولې وه دقومي عصبیت دغه جذبه وه چې وروستوېې ترقي اوموندله اواحمدشاه ابدالي ته یې دپښتنو د یو سلطنت په قائمولوکښې لاره صفاکړه. )) ( ۳۷ ) .

پای

ګلشن اقبال ـ کراچي

دثوراوومه۱۳۷۱ ش ( ۳۸ )





## لمنلیکونه

( ۱ ) ددغي ليکني دليکلو پروخت قلندر مومند ژوندی و. له بده مرغه دپښتنو دغه نقاد محقق او شاعر اوس وفات سوی دئ. خدای دې وبخښي. م ـ هوتک (اګسټ ـ ۲۰۰۴ ع).
( ۲ ) خيرالبيان ـ ۲۲ مخ ـ دکابل چاپ
( ۳ )هيوادمل ـ زلمی ـ دهند دکتابخانو پښتو خطي نسخې ـ ۹ مخ ـ ۱۳۲۲ ش کابل
( ۴ ) مومند ـ قلندر ـ دخيرالبيان تنقيدي مطالعه ـ ۱ مخ ـ ۱۹۸۸ ع ـ پېښور
( ۵ ) هماغه اثر ـ
( ۲ ) هماغه اثر ـ ۲ مخ
( ۷ ) هماغه اثر ـ هماغه مخ
( ۸ ) تذکره الابرار والاشرار ـ ۱۴۸ ـ ۱۴۹ مخونه
( ۹ ) خيرالبيان ـ لغتنامه ـ ۴۲ مخ ـ دکابل چاپ
( ۱۰ ) هماغه اثر ـ لغتنامه ـ ۱۱۸ مخ
( ۱۱ ) ماولات هغه کلام ته ويل کېږي ، چي د ظاهر پرخلاف اړول سوی وي. متشابهات هغو آيتو ته ويل کېږي ، چي معنی یې ثرګنده نه وي. محکمات هغه آيتونه دي ، چي معنی یې ثرګنده (صريح ) وي.
( ۱۲ ) دخيرالبيان تنقيدي مطالعه ـ ۱ مخ
( ۱۳ )حالنامه ـ ۳۳۸ ـ ۳۳۹ مخونه ـ دکابل چاپ
( ۱۴ ) خيرالبيان ـ سريزه ـ ۳۱ مخ ـ دکابل چاپ
( ۱۵ ) تنقيدي مطالعه ـ ۱۰ مخ
( ۱۲ ) دافغانستان پېښليک
( ۱۷ ) خيرالبيان ـ دېباچه ـ ۴ مخ ـ پېښور
( ۱۸ ) تنقيدي مطالعه ـ ۱۱ مخ
( ۱۹ ) هماغه اثر ـ هماغه مخ
( ۲۰ ) هماغه اثر ۱۲ مخ
( ۲۱ ) هماغه اثر ۱۳ مخ
( ۲۲ ) هماغه اثر ۱۳ مخ
( ۲۳ ) هيوادمل ـ زلمی ـ دهند دکتابخانو پښتو خطي نسخې ـ ۱۲۲ مخ
( ۲۴ ) هماغه اثر ـ ۲۱۴ مخ
( ۲۵ ) دوولس کاله وړاندي ، چي ما داليکنه کښل ، دروښان پيردمړيني په باب د حالنامې متن د قلندر مرحوم په ګډون ټولو محققينو همداسي لوو ست ، لکه ما چي یې بيان لوړ راوړی دئ. تر دې وروسته ددغه متن په لوستلو کي ډېر لوی انکشاف راغی. او هغه دا چي له ۹۸۰ هـ ق څخه د حالنامې دمولف مراد دآغازپور دجګړي کال ښوول دي او روښان تر دغي جګړي دوه نيم کاله وروسته وفات سوی دئ. دې مسئلې ته زما دمعلوماتو له مخي واردواره ښاغلی سيف الرحمن مسعود متوجه سوی دئ او دا موضوع یې دخپل کتاب (( پيرروښان او روښاني انقلاب )) چاپ ـ لړم ۱۳۷۷ ش ـ اکتوبر ۱۹۹۸ م په ۱۱۲ ـ ۱۱۸ مخونو کي توضيح کړې ده. دده په نظر روښان (( به د ۹۸۳ هـ ق د شعبان او يا رمضان په مياشت کي وفات شوی وي )). ښاغلي سرمحقق زلمي هيوادمل هم پر خپلو استنتاجونو نوې کتنه کړې ده. دی د روښان مرګ د حالنامې په استناد د آغازپور تر جګړې دوه نيم کاله وروسته بولي خو د آغازپور جګړې د پېښېدو کال بيا د خيرالبيان د دوهمي مکشوفي نسخې د پای د عبارت پر بنسټ ۹۸۳ هـ ق ګڼي او په دې ډول د روښان د وفات کال (( د ۹۸۵ هـ ق کال جريان )) بولي. ( وګورئ: د پښتو ادبياتو تاريخ ـ لرغني او منځنۍ دورې ـ ۹۱ مخ ـ لړم ۱۳۷۹ ش ـ نومبر ۲۰۰۰ م ). دا نېټه د ارواښاد قلندر مومند قياس ته نژدې ده. خو ماته ددغي نېټې د تسليمولو په باب مشکلات په دې برخه کي سته ، چي د حالنامې په دوه کرښيز عبارت کي ولي بايد يوه برخه ومنل سي او بله نه ؟ له دې امله زه د ښاغلي مسعود د ( ۹۸۳ هـ ق ) او د ارواښاد قلندر مومند او ښاغلي هيوادمل د ( ۹۸۵ ـ ۹۸۲ هـ ق ) ترمنځ وروستۍ فيصلې ته نسم رسېدلای.
( ۲۷ ) خيرالبيان ـ دېباچه ـ ۸۲ مخ ـ د پېښور چاپ
( ۲۸ ) هماغه اثر ـ دېباچه ـ ۵۰ ـ ۵۱ مخونه
( ۲۹ ) خيرالبيان ـ دکابل چاپ ـ ۲۹ مخ
( ۳۰ ) تنقيدي مطالعه ـ ۵ مخ
( ۳۱ ) له دې ځايه وروسته په اصلي مقاله کي د (( خ )) توري په باب يو تحقيق و ، چي ما دارواښاد قلندر ديوه بل اعتراض په باب کښلی و . دا تحقيق مي دلته له متن څخه وايست او دیوې جلا ليکني په بڼه به یې تاسي په وروسته پاڼو کي ولولئ.
( ۳۲ ) تنقيدي مطالعه ـ ۴۲ مخ
( ۳۳ ) هماغه اثر ـ ۴۴ ـ ۴۵ مخونه
( ۳۴ ) مخزن الاسلام ـ ۲۱۳ مخ د ۱۳۰۰ هـ ق کال چاپ





(۳۵ ) تنقیدي مطالعه ــ ۵۱ مخ

(۳۶ ) هماغه اثر ــ ۴۵ مخ

(۳۷ ) ظفرکاکاخېل ــ پښتانه د تاریخ په رڼا کښې ــ ۷۴۱ مخ

( ۳۸ ) دالیکنه ماد ۱۳۷۱ ش کال په سر کې د ښاغلي زرین انځورصاحب په غوښتنه د (( سپېدې )) مجلې له پاره په کراچي ـ پاکستان کې ولیکله او د مجلې پرپته مې ورولېږله. په دې ترځ کې زه له خپلې کورنۍ سره کاناډا ته راغلم. له دې ځایه مې له مکرر پوښتنو سره سره هم دا درک معلوم نه کړ ، چې دا لیکنه په (( سپېدې )) کې خپره سوه که یا ؟ څو کاله وړاندې چې ښاغلی حبیب الله رفیع تورنتو ته راغلی و ، زما د پوښتني په جواب کې راته وویل ، چې دا مقاله په (( سپېدې )) مجله کې خپره سوه او دوی یې د یوې برخې نقل قول هم راته وکړ. خو د مجلې ګڼه یې په یاد نه وه او ما ته هم تراوسه پوري څرګنده نه ده ، چې دا مقاله د (( سپېدې )) په کومه ګڼه کې خپره سوې ده. د دې مقالې څو برخې په تورنتو کې د خپرېدونکې جریدې (( ګډ هیواد )) د لومړي کال له پنځمې ګڼې څخه پر له پسې خپرې سوې. خو د ګډ هیواد نشرات وځنډېدل. په لندن ـ انګلستان کې خپرېدونکې مجلې (( ډېوې )) هم د دغو پاڼو دلېږلو غوښتنه راڅخه وکړه خو زما په خیال خپرې یې نه کړې. ځکه دوی ته به معلومه سوې وي ، چې دا مقاله په سپېدې کې خپره سوې ده.